# اهداء

د اسلامي جهاد د هغو شهیدانو

سپیڅلو ارواوو ته چې مرګ یې و واښه

خو په خپله مړه نه شول.

(نصرت)

حامداً ومصلياً .

جوړ می د شعر قتلمه کړه، خو تر خه ده
پټ پکی خوا بزه هم شته، که څوک پۍ وخکۍ
«حمزه بابا»

# نه نقد او نه تقریظ

قرآن کریم د خپلو فطري سنتو له مخې د شاعرانو په باب یوه پریکنده پریکړه کړیده، چې له سره چاته دا پوښتنه او اندیښنه را ولاړیدو ته نه پریږدي، چې یره په دی اسلام کې به د شاعراو د هغه د «فن» «شعر» څوموره وزن وی ؟

فرمائۍ !

«د شاعرانو پر پلمه هغه څوک ځي، چې بیلاري او بې سره وی.. ، خکه شاعران، هغه څه وائۍ چې نه ئې کوی ، مګر هغه کسان چې د «بشپړ» ایمان خاوندان ، او نیکان وي او خدای ئې ډیر رنماغځه ، او تر خپل مظلومیت وروسته له ظالم نه «کسات واخیست»[۱]، که د داسې کسانو پر پله څوک لاړ شي ، نو حق لري،

د ۱ ، - د الشعراء د ۲۲۴ - ۲۲۷ ایتونو مضمون .

د قرآن کریم له دې ډلبندۍ، او تقسیم نه او ښاریږي چې د. د کومو شاعرانو په ډېرو او ډېرو کې چې فاصله او واټن وي، هغوی نه یواځې پخپله، بلکې پیروان او لاروي هم بې لارې او بې سره دي، د شاعرانفرادي او اجتماعي شخصیت باید سره سمون او یو رنګي ولري.

شاعر باید د خپلو هنري تخلیقاتو، پر حقانیت او اجتماعیت مؤمن وي، یعنې تولنې او پرګنو ته، هغه هنري زیږونې او مولودات وړاندې کړي، چې ورته اړوي.

د کامنا تو تحقیق ښبنتن په بیا بیا او پرله پسې «یاد» او نماغنځنه وکړه ی شي، د ټولنې خپلې او نتلې پرګنې د استضعاف او مظلومیت له شر وری کندې نه راو باسي.

او بالآخره:

د هغو خپلیو او ځوریدلیو پرګنو له تحت الشعوره د زمانې د اهرېمنانو او مستکبرینو په وړاندې، د کسات انتقام، او حتی د انقلاب هغه ویده، عناصر «یو ځي» را ویاروي، چې د هغې انقلابي او حماسه زیږ. وونکیو شاعرانو د نشتوالي له امله د مرګ او قنوطیت په درانه خوب ویده وو.

په اسلام کې د شعر او شاعرۍ د هغه ارزښت له مخې وه، چې رسول اکرم (ص) پخپله د اسلام شاعر حسان بن ثابت (رض) ته منبر سماوه او اینبوده او

د زمانې د مستکبرینو د بریڅو مرتجعو شاعرانو ځواب
ته یې هڅاوه ، او چې اور ژبی حسّان رض، په ځواب ځوله -
پرانیستله ، نو پیغمبر اکرم ص، وفرمایل :
روح القدس د حسّان په شا به غبرینږي (۱)
خبره دا نه ده چې مقدمې ونیوه ، ویل مې دا چې قرآن کریم
خو د شاعرانو د هنري استعداد او د دیخ اوبه ده او ساز
په شان کرخوچې زموږ د دې روان اسلامي انقلاب په
بهیر کې زموږ د هغو څومره ونډه ده ؟
له امیر معاویه نه د شعر په تعریف روایت دی ، وایي :
شعر یوه لمسونکې او محرکه وینا ده ، چې ، انسان په
ځوښ او غیرت راولي (۲) .
د اتعریف که له هره اړخه په ټول پوره هم نه وي
خو له موږ سره د موضوع په رڼولوکې لاس کولای شي او
په رڼاکې یې کولای شو د خپلو شاعرانو هغه ترموکري
انقلابي رسالت وڅیړو :
زموږ د اسلامي انقلاب په بهیر کې که تر اوسنۍ
مادي زیان تیرشو نو د مادیت او دهریت په دې لیونۍ
او لالهانده دنیاکې زموږ د انقلاب پیلامه د معنوي -
استعدادونو د راژوندي کولو لپاره یو هاتف او یوه آسماني
ندا ، کڼل پکار دي .

(۱) وګ :- د تیراه وږمې ، (۲) وګ :- غرګه .

له کومې ورځې چې زموږ اتل ننګيالي او پر حق له سره
تېر اولس د بلو سترګو مړه بڼکيلاک د انسان دښمنۍ پر
خلاف توري ته لاس اچولی دی، زموږ د غوښتونو او متعهدو
شاعرانو ورسره جوخت د قلم شړې د خپلو ځيګرونو
د ايشنده سرې وينې په مړه زړه لمدې کړې دي او
همغه څه يې پرې ليکل شروع کړل، چې اولس او ټولنې
ترې غوښتل . او همغه وې :

تل پاتې حماسې ،
انقلابي ترانې ،
اهوړانې[1] اشلوکونه او شعرونه ،
او اوراپالونکي زمزمې او شعارونه ،

د اولس د دغو معالجوا او رنځور پالو شاعرانو په لړکې
مو يو هم د کشري کول يو حساس او خوږمن ځلمي ښاغلي
امان الله نصرت دی ، چې د اوږ جنوبمونو او زهر جنو -
بړليو پر بې رحمه خاوندانو يې د شعرونو او شورونو
د « اور » داسې باران ورکړی دی ، چې که د خپلو هم
بازموندا، او آهنګ ورسره همداسې غبرګ و ، بيا خو
همغه ورځ لرې نه ده ، چې نصرت صيب په خپل ښه وبلو
او جنګيالي ، اولس د زغمليو کړاوونو د نعم البدل —
« خپلواکۍ » زيرې وکړي .

---

(۱) - اوروحاني ، عرفاني ، او مذهبي شعرونه

شني جنډې هر خوا رسېږي، اې نصرته سبا وون دې
دا ايمان په څوک داده يم، سر لوړې زما مضمون دی.



د نصرت صيب په کلام کې که د موضوع پر تکرار بستره
پېتې شي، نو د فن په باب تې سړی په خورده ورباندې شي
چې د نصرت صيب فن او فني شخصيت په هغه کښې تلل -
پکار دي چې زموږ د نورو ځوانو شاعرانو ادبي کيفيت پرې
تاله شي.

زه يې د هنري او ادبي ارتقاء په باب اتکل نه، چې يقين
کوم، څکه نصرت صيب ځوان دي. او ځوانانو ته هسې هم
د لا برتګ محه خلاصه وي، نصرت صيب ته د شاعرۍ
نعمت نه په ميراث کې پاتې دی او نه پرې تحميل شوی دی
او د چاخبره د اور سکر ورته بې د چاله نغري نه په سوال
نه دي غوښتي، بلکې شاعري يې د خپلې سر بريد لې او رنجيدلي
او رو سرځپلي تولنې رهنمائي او علاج په توګه غوره کړي
ده، نو چې په کوم فن کې ذاتي مذاق او خدای ورکړي -
استعداد پر اکراه، ترغيب او تحميل غالب وي، په هغې کې
د برتګ برې او ودې لنبې له ورا بنکاري.

د نصرت صيب د فن پر خرنګوالې او رغاونه زيات څه
څکه نه ليکم، چې خدای مکړه پخپل عقيده تمند انه قضاوت
کې تېر نه وځم، او د ربنونقادانو د خاطر په زړه ويلولو ورته

و

کوز کوری نشم .
نور نو داتاسي او داهم د نصرت صیب فن ، نو زه له منځه ورځم .

په خدای ئې سپارلی .

محمد آصف صمیم

۹/۶/۶۴

بخشي پل ـ پلینور



# یوڅه د رانولوستونکوته

له هغې لارې چې زمونږ د اسلامي هیواد پر تاریخ دکمونیزم تورې پاڼه ور زیاته شوه نو زمونږ بې دفاع او تش لاسي ولس د ډیر و تر ټولو غمناکو حالاتو سره مخامخ شو، بې دینه کمونستانو دخپلو بادارانو په ملاتړ زمونږ د مسلمان او مظلوم ملت د محکومولو او زمونږ د خپلواک اصالت دختمولو په خاطر داسې نادودې او ناکردې پیل کړې چې په لیکلو به یې هر بشر دوست او د حساس ضمیر خاوند داوښکو پرځای وینې تویې کړي او د دغو ناروا او غیري انساني اعمالو په لیدو او اوریدو به کوته په غاښ پاتې شي.

روسانو نه یواځې د بین المللي قوانینو او سوله ایز ژوند د اُصولو پر خلاف زمونږ آزاد او مستقل هیواد پخپل نظامي یرغل او تیري سره اشغال کړ تر څنګ یې زمونږ مادي او معنوي شتمنی او پانګې هم چور او لوټ کړې او په نظریاتي لحاظ یې هم زمونږ فرهنګي اصالت او ایدیالوژیکي مسیرته فشار او تهدید لاندې راوسته، خوله مبنه بخته چې دهغوی تولې له شرمه

دکې هلې ځلې په بشپړه او کامله توګه شنډې او ناکامې پاتې شوې او ويې نشو کولای چې د افغانستان پر مؤمن او مجاهد ولس خپل فرهنګي استعمار تحميل کړي.

او خپله بې اساسه او پوچه نظريه پرې ور- وتپي نو هم دا وجه وه چې روسانو د خپلې دغې لويې ناکامۍ په احساسولو سره وغوښتل چې خپل وحشيانه او شوم اعمال وروستي سرحد ته ورسوي او په عمومي وژنو او بې امانه نظامي عملياتو يې د دې لپاره پيل- وکړ چې وکولی شي زموږ د خدای پرست او مسلمان ولس په وژلو او له منځه وړلو سره ورته د اسلامي افغانستان د بوره تشکيل او اشغال لحه خلاصه شي او په اسانۍ سره دغه اسلامي خاوره په خپلو سياسي اقمار وکې راولي او په دې توګه د نړۍ پر مخ خپلې پوځي اډې زياتې او خپلې سياسي بلاک پياوړی او مضبوط کړي او س نو چې روسانو د مرګ، ژوبلې کوم غوبل پيل کړی دی دا د هيڅا له سترګو څخه پټ نه دی او د ګران افغانستان لويشت لويشت خاوره د بې ګناه او بې دفاع افغانانو په وينو لمبيدلې ده، دا مې ښار، بازار، کور، کوڅه، حتی هيڅ ځای نشته چې د روسي ښکر د وستانو! دامن د مدعيانو! او د سولې د بيرغيانو! د ټرکت او د نيپالم سوغات نه وي ور رسيدلی او د کمونيزم د وحشت په لمبو نه وي

نه وي سوځېدلي په ټول افغانستان کې يې په مرګ ژوبلې او انسان وژنې سره سره ورځ جوړه کړې ده چې له -- دېښتو او ښارونو څخه داورلمبې اود ويرناري پورته کېږي، او شهيدان دلې دلې دابدي ژوند او دالله ج، درحمت په لور ليږدي، لوی او واړه په خپلو وينو کې ترېکې وهي او د خپل خلاصون لپاره لوڅې پوڅې کوي، روسي وحشي - جلادان، ښځې، او نارينه ځوانان او بوډاګان په پوره بې رحمۍ سره ژوندي په خاورو کې ښخوي او پر سينو يې ټېنګ اوبرچې ورمنډي او ټانکونو غوبل پرې کوي اوبالاخره د روس د مظالمو او انسان دښمنيو پر برېنډ ولو خو کتاب نه چې کتابونه ډکيږي خوخو مره چې ديوه درديدلي او - متعهد ځوان افغان په توګه به ما پورې اړه لري نو - زما احساسات اومنتقمانه عواطف به درانه لوستونکي زما په دې کوچنوټې مجموعه کې ولولي که څه هم له دې نه عاجزه وي چې د روسي وحشي او ښنا ورو پوځونو او - د کمونيزم د تالي څټو ګوډا ګيانو اوبرېڅو، مظالمو، وحشي ګريو او بربريت څخه پرده پورته کړي، خو، مشت نمونه - خروار،، څه ناڅه يې د پورتنيو فجايعو او انساني ضد اعمالو غند نه ضرور رشوې ده، او تر يوه حده پورې د روسانو مظالم، ناروا او له شرم اونفرت نه ډک عملونه په ګوته شوي دي، نوله محترمو لوستونکو څخه هيله لرم چې زما د غې مجموعې

پر ادبي کمزوریو او معنوي نیمګړتیاوو سترګې پټې کړي او ما ته د هغې بښنه وکړي.

په افغانستان کې دیوسوچه او ربښتینې اسلامي حکومت د جوړېدو او دروان اسلامي انقلاب د بشپړ بریالیتوب په هیله.

په دیره مینه او درنښت

امان الله نصرت.

# دمجاهد غږ

سر مې لاس کې دی نیولی کړې قبول یې ستا په در کې
ستا رضا الپاره ربه تویوم وینې سنګر کې
په تش لاس دکمونیزم سره مبارزه جنګیږم
ما دحق سنګر نیولی استعمار سره ″ جنګیږم
دسرو وینو رود نیل کې به لاهو دوخت فرعون کړم
ستا په لاره کې خاونده هر غدار سره جنګیږم
توپانونه جوړومه بُت خانو د هر آذر کې
د باطلو سره وران یم زه پتنګ د حقیقت یم
دالحاد اصلي دښمن یم مخالف د دهریت یم
دجهان په مخ به ختم کمونیزم او فساد کړم
یم وتلی قربانۍ ته اُمید وار د شهادت یم
پاک قرآن حاکمومه د نړۍ په لراو برکې
ستا رضا لپاره ربه تویوم وینې سنګر کې
قرباني ده راته پاتې اسمٰعیل نه په میراث کې
شهادت زما شعار دی مرګ نه نه یم په وسوسه کې
توپ او ټانک سره جنګیږم د ایمان په زور داده یم
دجهاد سنګر ته ځمه په ښه مینه سر په لاس کې
قیامتونه مې پراته دي غږ دالله اکبر کې

ستا رضا الپاره ربه تویوم وینې سنگر کې

بُت شکن د نړهانې یم د دښمن زړه ته انګاریم
نه ویریږم سر ولمبو ته چې روان د حق په لاریم
که سکروټې یې په خوله شي بیا به هم په زوره وایم
مسلمان یم مسلمان یم تلینګ به تل په دې شعاریم
د خدای ج مینه مې پرته ده په رګونو او ځیګر کې
ستا رضا الپاره ربه تویوم وینې سنگر کې

دا جهان له کوونږم او هر ایزم پاکومه
د اسلام روڼې دیوې لې په هر لوري رسومه
ما پیل کړې د الحاد او د باطل په ضد جګړه ده
حکومت د یوالله ج به په نړۍ کې جوړومه
د اسلام مشال به بل کړم د دنیا په بحر و بر کې
ستا رضا الپاره ربه تویوم وینې سنگر کې

نه اتل د نړهانې یم نه فاتح د هر میدان یم
نه زمری یم ننګیالی یم په نړۍ کې قهرمان یم
سر لوړې او سر بازي ده له ازل نه خدای راکړې
وروسته نه ځم مخکې کیږم مسلمان یم با ایمان یم
شهادت د مؤمن پت دی مرګ مې خوښ نه دی بستر کې
ستا رضا الپاره ربه تویوم وینې سنگر کې

په سرو وینو به سمسور کړم د وطن د بڼې ډاګونه
ګران هیواد کې به پرې نږدم د روسانو قدمونه

سر و لمبوسره لوبیږم دمرګي په لار روان یم
ماتوم سره څنځیرونه ، تارکوم ، یرغلونه
دمرګ دار باسره لشته تینګ ولاړیم په ډګرکي
ستارضالپاره به تویوم وینې سنګرکې -

د تاریخ په مخ به بنکل کړم افسانې دغیرتونو
ولسونه به ازار کړم د بنکیلاک له څنځیرونو
شرق اوغرب کې به وي سیوري د توحید دبیرغونو
په آموکې به لاهوکړم ککړه دسرو پوځونو -
روسي شوبلې دوبومه دسرو وینوسمندرکې
ستارضالپاره به تویوم وینې سنګرکې

دږمري په خیر وردانګم دکفارو پرصفونو
انتقام دوینو اخلم دمظلومو ولسونو
په یولاس کې مې ټوپک دی په بل لاس کې مې قرآن دی
بنیادونه لړزومه دوارسا د ترونونو
توره دال زماکانه ده کرار نه کښینم د فترکې
ستارضالپاره به تویوم وینې سنګرکې -

دحمزه ض پشان قربان به سرپه لاره دخپل دین کړم
زه به قبرکې خوشحاله روح د ستر جمال الدین کړم
دخوشحال د توري شرنګ یم سپیلنی له نام اوننګ یم
مکناتون غوندې به خاوري ککړه دهرلعین کړم
آزادي مې ابشکل شوي ای لنصرته په ښترکې
ستارضالپاره به تویوم وینې سنګرکې

# وژړل

شمعې ټوله شپه کې د هجران راسره وژړل
خدايږو کاڼو، بوټو او بيابان راسره وژړل

زه وم او غمونه، اندېښنې د اوښکو دارې وې
ستورو خو لا څه، څيرې ګرېوان راسره وژړل

اه د مظلوميت مې د فلک ګرېوان ورڅيرې کړ
ستورو په سلګو د آسمان راسره وژړل

سرې لمبې خورې دي دو زخونه ترې پناه غواړي
اور د ظلم بل دی انس و جان راسره وژړل

سترګې د شفق زړه د نړۍ په وينو سرې شولې
دښتې، غرونه ژاړي کهکشان راسره وژړل

لاړه ګلشن ته له اغزو مې لمن ډکه شوه
سوې ګل، بلبل او ګلستان راسره وژړل

خاورې مې وطن شو په بمونو لوټې لوټې شو
سرې سکروټې اوري ټول جهان راسره وژړل

دې ظلم ته خدايږو چې تاريخ ګوته په غاښ شولو
سترګو قلم مې او ديوان راسره وژړل

ما چې ای نصرته کلی کور او وطن پرېښوده
چغې شوې سلګۍ شوې زاړه او ځوان راسره وژړل

# پاڅون

د توحید په منارو کې د تکبیر خوږه ناره ده-
سباوون د انقلاب دی آزادۍ د ژوند نغمه ده
د وحشت سکون مات شوی د تکبیر خوږو نارو کې
د ربنو تورو شرنګار دی غرونو دوب دي انګازو کې
د کهسارونو په سرو فوځونو سره اوروونه لګېدلي
د بنګیلاک سره ځنځیرونه موشوخپوته په سجدو کې
زیاتي دور د اسلام دی ختمیدونکې توره شپه ده
د توحید په منارو کې د تکبیر خوږه ناره ،،، ده
د طاغوت توري لښکري په آمو کې لاهو کیږي
د ایمان په مقابل کښې توپ او ټانک کله ټینګیږي
سنګرونه پرې شاهد دي آسمانونه پرې شاهد دي
باطل تل د حق په مخ کې هر سنګر کې نسکوریږي
سور بیرغ په اور سوځیږي په سر یا د حق جنډه ده
د توحید په منارو کې د تکبیر خوږه ناره ده
د هیواد هره دره مې د روسي عسکرو ګور شو-
چې یې هونږ په اور سیزلو په سرونو یې بل اور شو
د مؤمن ملت قیام دی پر ګنې را پاڅیدلي-
د سره ګارډ په سر بازانو جوړ ماتم او د غم شور شو
سره ماڼۍ کې جوړه شوې ای نصرة نازله ده

# لوبې کوم

د هجر شپه ده تورتمونو سره لوبې کوم
له تودو اوښکو فوارو دونو سره لوبې کوم

وخته زما په سر دې راوستل د غم وختونه
ځکه دردونو کړاوونو سره لوبې کوم

د مینې کور کې مې رقیب داور لمبې بلې کړې
هره خوا وریدي سرو اورونو سره لوبې کوم

د دیدن هیلې مې تالا شوې امید ونه خاورې
په غرونو سرې یم هجرانونو سره لوبې کوم

سپرلیه ماته د ګلونو کیسې څله کوې ؟
زه په بهار کې خزانونو سره لوبې کوم

پتنګه راشه سوځېدل دیار په لښو کې زده کړه
په اور سوځېږم له تانکونو سره لوبې کوم

نصرته زړه مې سره لمبه شو سر تر پایه وسو
له بې علاجه پرهرونو سره لوبې کوم

# د یتیم اوښکې

بل پر مونږ ه اور دی خو جهان خبرې نه کوي
ولې د انسان په مرګ انسان خبرې نه کوي

جوړ چې قتل عام دی سمه او غر کې سره او سهونه دي
وینې څښي پیالو کې خولیوان خبرې نه کوي

ډیر ګلونه خاورې شول لا نور به خاورې کیږي هم
غوږ دي په اغزو خو بلبلان خبرې نه کوي

بل طرف د کمون بچو د شمعې په زړه اور د غم
سوځي په لمبو خو پتنګان خبرې نه کوي

جوړه کربلا ده د سرو وینو بارانونه دي
ناست دي ننداره ته جهانیان خبرې نه کوي

بیا د وخت فرعون انسان وژني څه خوند اخلي
ولې د مظلوم څیرې ګریوان څیرې نه کوي

وینې د هر څه، د امنیت شورا، خوره وینې
ناسته په خوله ده د توپان خبرې نه کوي

هره خوا سپرلی دی خو زمونږ په خونه غم جوړ دی
شړېږي بلبلان د ګلستان خبرې نه کوي

ډیرې شولې بورې ډیرې کونډې ډیرې ورانې شوې
اوښکې تویوي تل یتیمان خبرې نه کوي

گوره دخالد بچې په اورچې ایسار یږي نه
سوځي په لمبو خو دخپل ځان خبرې نه کويا
ځې د اسمٰعیل په لار قربان به مال او تن کاندیا
هیڅ دمرګ دویرې مسلمان خبرې نه کوي
لوستي یې زانګوکې دغیرت او د پت درس ونه دي
تیر دي له سرونو افغانان خبرې نه کوي
ناست یې پلینو رکې او دجنګ سنګرته نه ورځې!
تاسره نصرته چې یاران خبرې نه کوي،

۶

# ټينګ ايمان

منصور ګوري په عشق کې چې د دار په لمن پريووت
خليل د حق په لار کې د اور په لمن پريووت
ځنګيږم نه ويريږم سر مې لاس کې دی نيولی
خوښيږم چې دريږم که مې خار په لمن پريووت
هوس مې شهادت دی ځکه مرګ نه بې پروايم
مرګ په راشه زړه مې ستا د لار په لمن پريووت
داخو ورځې ژوندون به ابدي ژوند نه قربان کړم
خوښيږمه که روح مې د ديدار په لمن پريووت
که سر مې هم له تنه جدا کيږي پروا نشته ...
او چت به هغه سر وي چې د يار په لمن پريووت
اسلام نه به وانه وړمه الله الله به وايم
نصرته که مې تن هم د خونبار په لمن پريووت

٭

٭

۱۶ / ۱۰ / ۱۳۶۰

# د ثور کودتا

چه په وینو یې سره کړې ښکلې ناوې د ایشیا ده
دا د سره خزان سیلۍ ده دا د ثور کودتا ده

آسمانانه جوړ تنور دی سرې لمبې دي او وړونه
خپلو غوښو کې سوځیږي د مظلوم انسان هډونه
ښاروونه وریت شول په لمبو کې سینې خیرې په چړو دي
پر هر روڼو کې شنېږي سره په وینو اندامونه
لوی واړه شول خاورو لاندې د افغان خونه تباه ده
دا د سره خزان سیلۍ ده دا د ثور کودتا ده

د ژوندون سینه لړزیږي د نیپال بم له هیبته
ولسونه در په در شول پرګنې شولې بې پته
هندوکش په چیغو ښاریږي د سپین غر لمنې سرې دي
د شمشاد لښتې شوې مړاوې د پامیر شمله را ښکته
ځمکه سره ده غرونه سره دي هم په وینو سره فضا ده
دا د سره خزان سیلۍ ده دا د ثور کودتا ده

دیوه مړه ده یاران نشته محفلونو کې لمبې دي
بلبل د کې سترګې ناست دی ډوبې خاورو کې غوټۍ دي
زانې سوځي په هواکې زرکې شکو کې سپېرې دي
د شپونکي خوږه شپیلۍ کې نن د مرګ او ویر نارې دي

سپوږمۍ مخ وریځ کې پټ کړې کتي نه شي ناروا ده
دا د سرو خزان سېلۍ ده دا د شور کود تا ده

نن د پېغلو وربلونه په سرو وینو لمبېدلي
د ځوانانو شملې ګوري په لحد کې غوړېدلي
د بګرام ترکې ژړېږي د مینو پر قبرونو
د حنا حاجت یې نشته پرې سرې وینې بهېدلي
د سرو وینو فوارې دي زهرجنه شان فضا ده
دا د سرو خزان سېلۍ ده دا د شور کود تا ده

هرې خواته لیدل کېږي په ترپکو اندامونه
د چاسترګې ړندې شوې د چا مات بنې او لاسونه
څوک په سرو وینو لمبېږي غوړېدلي پرې سور شال دی
څوک په خاورو کې ترپېږي قلم شوي یې سرونه
دا د سرو قصابخانه ده دا د ظلم انتها ده
دا د سرو خزان سېلۍ ده دا د شور کود تا ده

نن هغه هډوکي اوړ دي د ناړنج چې به میلې وې
ګل غوړېده او غوټۍ ده چې یې ښکلې ننداره وې
ماهیرکې وینې خاځي د پغمان او به هم سرې دي
ګل سرخ په وینو سور شوچه د نجونو پرې دېرې وې
بس ماتم دی هرې خواته فریادونه او ژړا ده
دا د سرو خزان سېلۍ ده دا د شور کود تا ده

څوک به وتومبي ګلونه تورو زلفو د اوربل کې

د نرګس غوټۍ به کېږدي کوم یو ځوان د ینګرۍ ول کې
تار به تار دي ګېر یوانونه زړونه چاودي د هر در شل کې
څوک به وخاندي یو بل ته د یارانو په محفل کې
چې بهار پرې نازېدلو نن هغه خزنه ستا لاړ ده
دا د سره خزان سېلۍ ده دا د شور کوډتا ده
نن هغه سترګې نښتي دي چې کاته وکړې ګلزار ته
نن هغه احساس ویده دی چې خندل به یې بهار ته
نن هغه ژبې ګونګې دي چې تبریک ورکړې مالیار ته
نن هغه ګوتې دي ماتې چې غزل ولیکي یار ته
مینه مړه ده، حسن خاورې، د ژوندون کډه په شا ده
دا د سره خزان سېلۍ ده دا د شور کوډتا ده
طوفانونه د شمال دي له قطبي د پښتو راپورته
شمع مړه ده سرنا نشته تورې شپې ده هر یو لوري ته
هره خوا شور او سلګۍ دي هره خوا ویر او زګیروي دي
ګوره ګوره نړیوالو د روسانو ظلم زور د ته
د ماتم وړیځې خپرې دي انګولا ده او غوغا ده
دا د سره خزان سېلۍ ده دا د شور کوډتا ده
د ژوندون بېړۍ غرقېږي د مرګي پر او ن و بار ده
د افغان خزنه تالا شوه سوځېدلي په انګار ده
جنازې د افغان وړي د روسانو له ستمه
مرګ تر ول کا هم سېزل کا د اخاصه د استعمار ده

افغانان سوځي لمبو کې جوړه شوي کربلا ده
داد سره خزان سیلۍ ده دا د شور کودتا ده

داروسي بشر دوستان اننن انسانان سیزي لمبو کې
دادامن مدعیان اننن افغانان سیزي لمبو کې
داد سولې پلویان اننن ټول جهان سیزي لمبو کې
لوی واړه سیزي لمبو کې زاړه او ځوان سیزي لمبو کې
ټوله مرام یې خرګند شوی سره خیره یې هم سهوا ده
داد سره خزان سیلۍ ده داد شور کودتا ده

خونړۍ موږ مؤمن ملت به استعمار سره جنګیږي
ښځې نر به موږ به مینه دغه لارکې قربانیږي
سنګرونه به رنګین کړي د سرو وینو په ګلونو
قربانۍ ته راوتلي له مرګي نه نه ډاریږي
سره بلا ګوری چې تښتي د مرګي نه وار خطا ده
داد سره خزان سیلۍ ده داد شور کودتا ده

سور ښامار به غړ غړ ودي د مرګي په پوله سپوږدي
سترغور ځنګ د برګنو دي په غلیم بل شوي اور دي
ترمسکوه به خلاص نه شي افغانان ټول پاخیدلي
دکارګرلاس کې خټک دی د بزګر په لاس کې لور دی
کمونیزم څوره کیږي د دښو تورو خرپا ده
داد سره خزان سیلۍ ده دا د شور کودتا ده

پیوستون د مؤمنانو به صفحات کړي د دهریانو

انتقام اخلي دوينو دا د وخت له فرعونيا نـــو
غوځوي پوزې غرورونه د تاريخ له قصابانـــو
ماتوي دا توريې دا يې د دې عصر دليرانو
د اسلام ډيوې بليږي توره شپه زياتي صباده
دا د سره خزان سيلۍ ده دا د شور کـودتاده
د سرو وينو په بدل کې به آزاد افغانستان شي
د جهاد ګرم سنګر کې به نابود سروسي پوځيان شي
سور شيطان به اې نصرته د تاريخ کندوته لوېږي
د توحيد جنډه به پورته د نړۍ په هسک آسمان شي
نن د حق او باطل جنګ دی کاميابي د حق برخواده
دا د سره خزان سيلۍ ده دا د شـور کـودتاده

ناصر باغ

۱۷/۴/۱۹۸۵

# سرې لمبې

په تا وطنه نن د سرو وینو باران جوړ دی
ګلو، بڼار وکې دې د وخت د غلو تالان جوړ دے

ستا سر درې په اور ستي شوې سرې لمبې دي پکې
په سم او غر او رې بمونه زلزلې دي پکې
ګلونه خاورو کې پراته دي چمنونه شار شول۔
نن د سپرلي په ځای خزان دی تورې شپې دي پکې
په هره خوا کې دی ماتم آه وسوران جوړ دی
ګلو، بڼار وکې دې د وخت د غلو تالان جوړ دے

په ظلم وینې تویږي ټل ستا په بېباکه لمن
کفر و الحاد اېښی قدم ستا په بېباکه لمن۔
د اور لمبې دي خپرې شوې جهنم جوړ دی
بروسي وحشت کړې یرغل ستا په خپلواکه لمن
جوړه له تانه قتل ګاه ده سور توپان جوړ دی
په تا وطنه نن د سرو وینو باران جوړ دی

ماشومان وژني په ځانګو کې قصابان راغلي
فصلونه سېزي په بمونو بمباران راغلي
د کونډو، ورا رو یتیمانو فریادونه جوړ دي
انسانان وژني قتل عام ته سره لیوان راغلي

ماتم او ویر دی نن د سور کفر خزان جوړ دی
کلو، ښاروکي دي د وخت د غلو تالان جوړ دي

ستا پر ځیانو د سکروټو بارانونه کیږي
پر ښځو، نرو د راکټو گوزارونه کیږي
د وخت چنگیز توره ایستلې ده مرگونه کیږي
ستا په سینه کې جوړ محشر دی سخت ظلمونه کیږي
وائي نصرت د کربلا سپیره میدان جوړ دي
کلو، ښارو کی دي د وخت د غلو تالان جوړ دي

۱۸ / ۶ / ۱۳۶۳

(۱) بمبارونکی

# کفر سره جنګ غواړو

موږ د خپل هیواد نه ځاریدل لکه پتنګ غواړو
جنګ غواړو له کفر سره جنګ غواړو

موږه په سر و وینو خپل وطن ځانته ګټلی شو
موږه خپله خاوره به خپل همت آزادولی شو
موږ نه امریکا غواړو نه روس او نه فرنګ غواړو
جنګ غواړو له کفر سره جنګ غواړو

موږ خپل سرنوشت ټاکو د جنګ په سنګرونو کې
نه هم د دښمن سره خبرې په میزونو کې
موږ له هر دوښاته له خبرو څخه څنګ غواړو
جنګ غواړو له کفر سره جنګ غواړو

موږ به د ایمان په زور د غلیم سره جګړه کوو
موږ به په میدان کې د راتلونکي فیصله کوو
موږه خپله خاوره خپلو وینو باندې رنګ غواړو
جنګ غواړو له کفر سره جنګ غواړو

موږ د بل په خوښه د خپل ځان فیصلې نه منو
موږ سیاسي حل په نوم سازش او دوکې نه منو
نه له چا نه توپ او نه ټانکونه نه تفنګ غواړو
جنګ غواړو له کفر سره جنګ غواړو

# قانون زموږ اسلام دی

روان یولاس ترلاسه یوهدف یوموږ مرام دی
قانون زموږ اسلام دی
مؤمن دمؤمن ورور دی داد پاک الله کلام دی
قانون زموږ اسلام دی
د یو بل نه ځاریږو هیڅکله نه بیلیږو
وحدت باندې خوښیږو
ولاړ یو په یوصف کې یوسنگر یوموزمام دی
قانون زموږ اسلام دی
موږ تول یو سره ورونه - دیوتن اندامونه
شریک موږ دي دردونه
نفاق په موږ کې نشته لوی و کړی قیام دی
قانون زموږ اسلام دی
په حقه لار روان یو - لښکر دپاک سبحان یو
اسلام ځنې قربان یو
جهاد موږ ټک لاره اسلامي زموږ شعار دی
قانون زموږ اسلام دی
تباه به دښمنان کړو - نابود به سره روسان کړو
هلاک به دادهریان کړو

الله ج باندې ږاده یو هر غلیم موتل ناکام دی
قانون زموږ اسلام دی
قربان به شوله دینه - کړو ځان به ترینه وینه
جنګیږو به په میننه
نصرت نن دلویواو ورودغه پیغام دی
قانون زموږ اسلام دی

# څلور یزه

تاجی هر څه کړل دښمنه زما شوک
هم کوی راسره هر وخت بد سلوک

نوي نوزه درته کرارکښیناستی نه شه
کړه خوله به درته سمه کړم په سوا

# سکروټي

ويا ړم ويا ړم چې دخدای ج په لارکې سرخورم

پروا نشته وي که غشي په ځيگر خورم

بُت خانې دنمرو ديانو ړنگومه

په ميړانه هر طوفان سره ټکرخورم

دحمزه غونډې ور دانګمه ميدان ته

که هرڅو مړه پرهرونه په تبرخورم

له غليمه به پرشانه شم ميدان کې

که غوټې هم دمرګي په سمندر خورم

داحد احد نارې به مدام وايم

که پر زړه هم ګوزارونه دخنجر خورم

فرعونيان که امتحان دمينې غواړي

سرې سکروټې به په مينه ددلبر خورم

دبرستې مرګي نه غواړم له خدايه

زه نصرت به دمرګ غشي په سنګر خورم

# سباوون

اوسم د ننګو د ننګو غرو په غېږ کې
د ګران هیوا د د سر درو په غېږ کې
د قصراو د اوبستر نه پیژنم
یمه خوشحال د سنګرو په غېږ کې
توره تر ملا په دین غزا کومه
کفن په سر د سرو ملبو په غېږ کې
پر غلیمانو زلزلې راولم
د پولادي ټانک او جهازو په غېږ کې
د تکبیر غږ مې ملحدان لړزوي
هم د مسکوا او د وارشو په غېږ کې
د سباوون دیوی به بلې کړمه
د سر وحشت د تورو شپو په غېږ کې
نصرت به رابه شي سپرلي د ژوندون
د ازادۍ خوږو ونو په غېږ کې

۳۱/۸/۱۹۸۵

یونیورستي ـ ټاون

# بل مشال

مال و سر مې له اسلامه قرباني دي
خوږ ژوند ون د شهادت جاوداني دي
د بنږستنې مرګ ځوانانو ته پېغور دی
د عزت مرګ جهاد کې میداني دي
چې پتنګ غوندې له دين نه لوګی نه شي
عاشق نه دی نفساني دی نفساني دی
د حمزه په خير پر زړه زخمونه غواړي
د جنت منزل خو خدايي و ايماني دی
نيکمرغي د آخرت راکړي خاونده
د دنيا ژوند ون خو ورځې دی فاني دی
که هم دين او هم دنيا غواړې نصرته
بل مشال د دغې لارې قرآني دی

# اوښکې

سترګې مې هر دم له اوښکو ډکې دي
خدایږو د ستم له اوښکو ډکې دي
خنکه راته وایي سترګې پاکې کړه
توري شپې د غم له اوښکو ډکې دي
اوس به تول ځنګه راپه مخه کړي
وریځې د ماتم له اوښکو ډکې دي
سوځي بلبلان ګلونه خاورې شول
غاټکې د شبنم له اوښکو ډکې دي
جوړه کربلا ده سره اورونه دي
سترګې د عالم له اوښکو ډکې دي
سرې وینې بهیږي قتل عالم جوړ دی
خاورې مې د ننم له اوښکو ډکې دي
ځکه نن نصرت د غم کیسې لیکم
نوکې د قلم له اوښکو ډکې دي

# د سنګر خبرې

راځه د سحر باده د سنګر خبرې وکړه
په غوږونکې راته غلې د دلبر خبرې وکړه
په ځمکه یې بخمل چې د سرو وینو غوړېدلی
د هغه خوږ وطن د بحر و بر خبرې وکړه
په ګلو څه تیرېږي د بلبلو به څه حال وي
سرلی دی، که خزان، د سرو محشر خبرې وکړه
فضا کې سرې لمبې دي که د زړه نو کتار و نه؟
خیرېږه د ګودر ګودر وا ولښتر خبرې وکړه
نارنج او ارغوان ګلونه مشته که سرېدلي؟
منګي دي که بمونه د ګودر خبرې وکړه
شبنم په وطن اورې که سکروټې راورېږي
تیرېږي به پرې څه د سم و غر خبرې وکړه
په مینه به یاران محفل کې یو بل ته خندا کړي
که جوړ به وي قیامت د شور او شر خبرې
د پېغلو سپین لاسونه په نکریزو باندې سره دي
که سره دي به سرو وینو د اختر خبرې وکړه
سپوږمۍ او ستورې شته او که ګرد ونوکې ډوب شوي
خندا ده که ژړا دلرا و بر خبرې وکړه

دزړکوترانې دي که غرهاردی دتاسنګو نو
دسرو وحشي پوځونو د شر خبرې وکړه
شپونکي خېله شپېلۍ کې دپامیر سندرې وایي
ماتم دی که موسکا دسپین سحر خبرې وکړه
هلمند ، هرات ، پکتیا اوننګرهار کې څه تیرېږي
کابل ، پروان ، غزني او دلوګر خبرې وکړه
سپین غرنه ترتورغره هندوکش نه تر خیبره
فیروز دسلیمان او هرېو غر خبرې وکړه
تالاده که ورانه نن د «بیت نیکه» جونګړه
«احمد» او د «محمود» د زړه د سر خبرې وکړه
«نصرته» افغاني جمال «په قبر کې ژړیږي
«خوشحال» ته د روسانو دلښکر خبرې وکړه

۲۹/ ۱۱/ ۱۹۸۵
ناصرباغ

# زه هغه افغان یم

هغه اتل یم تاریخونه مې کیسې کوي
ای ساده د ښمنه ولسونه مې کیسې کوي

د هر غاصب او هر جابر دستر ګو خار یمه
لوله کارنامې مې د ښتې، غرونه مې کیسې کوي

د وطن خاوره په سرو وینو خړوب کړې ده
وګوره لاله، غاټول ګلونه مې کیسې کوي

د خدای په لار کې مال او سر قربانول شم
هره ادیره کې ښیرغونه مې کیسې کوي

د روسیې زړه ته په میړانه ورختلی یم
دروغ نه دي خرقه او یا د ګاروونه مې کیسې کوي

ادمکنات په خیر له تیغه ډیر تیر کړي دي
نن د انګریزانو اولادونه مې کیسې کوي

مر غلی محمود دی هره پیغله مې ملاله ده
وګوره د نجونو مرغلاسونه مې کیسې کوي

ات مې مرهټیان کړل، هند د یلي مې فتح کړې دی
څکه پاني پت او نور جنګونه مې کیسې کوي

ه تر اصفهانه پورې تللی په ظفر یمه
څکه د تاریخ رنګین بابونه مې کیسې کوي

اوس مې هم د وخت یولوی شیطان په ګوند وکړې دی
د بشتوکې ویجاړ روسې تا نګوینه مې کیسې کوي
توري اومیراني مې روسان وار خطا کړي دي
ننګه په رود ا و پر اخبار وینه مې کیسې کوي
هره سا د زړه کې مې پراته د علیم مرې دي
جوړ پرې د کارغانو اتڼونه مې کیسې کوي
بلې مې پرمیګ او پر ګنشپ ورته لمبې کړلې
سوې په سور اور پراته جهازونه مې کیسې کوي
لاس د بحر هندي بحر خون باندې بدله شوه
سره د روس په وینو بیابانونه مې کیسې کوي
نه هغه افغان یم چې مؤمن یم مسلمان یمه
خکه د نصرت خوا بره شعرونه مې کیسې کوي

# د حق سنګر

مونږ مؤمنان یو د ژوند ون مشال قرآن دی زمونږ
ستر محمد موستر پیشوا په خدای ایمان دی زمونږ
د حق سنګر مونږه نیولی د باطل په ضد
د خدای ج په لار کې شهادت د ژوند آرمان دی زمونږ

# لمره!

د يار پښوکې په سجده پرېوځه لمره
له امونه ترسپين غره ترخيبره

د ښارونو په هور وشينده لالونه
تاورا تاو شه د بخدي له لراوبره

د پامير د سر شپونكى پرتندي ئې ښكل كړه
راوچت شه د نړۍ د بام له سره

د وطن ناوې سور شال په مخ خپور كړې
ځان قربان شه د غازي افغان له دره

د لرغوني تمدن زانگو لوتيږي.
وېښ، ناورين شه دغليم روس په ككره

د نصرت هيواد له سروسكروتو ډك دى.
سپيلنۍ شه د جهاد له سره سنگره

# واوښتل

په زړه مې دغمونو انبارونه واوښتل
بارونه واوښتل دغم بارونه واوښتل
چې راغله میخانې ته د بشر د وینو تږي
ساقي له قهره سور شو تري جامونه واوښتل
وطن مې سره لمبه شو د بمونو په سکروټو
په بل مخ لوټي لوټي مې کورونه واوښتل
له سره زیږي آسمانونه د نیپالم له هیبته۔
نسکور پر مخ د ځمکې اوچت غرونه واوښتل
شبنم چه يې په مینه ښکلې شونډې ښکلولې
په ګلو د چمن خاورې ګردونه واوښتل۔
د ظلم سمندر له ډیره وحشته باغي شوي
نړۍ ته يې هر لوري یرغلونه واوښتل
د ژوند لاره نیولې غلچکو د لوټ په تمه
په ښار و میرو ځکه کاروانونه واوښتل
بېړۍ ته توپاني شوې ده نصرته خدای دې خیر کړي
په مورګولي هم خداین وچې موجونه واوښتل

# نا کام ځوند

که ځوندون نوځوندون دی د اسلام ځوند
مرګی زرځله بهتر دی تر غلام ژوند۔
د زمري غوندې هټ ځان پيدا کړه
غوره نه کړې ډګيدړ غوندې ناکام ژوند
که د زرو په تخت کښيني واک د بل وي
ورکوه يې ورکوه يې لاس په نام ژوند
بندګي د بندګانو پکار نه ده۔
تيروه د الله لاره کې تمام ژوند۔
ای نصرته سر د خدای لار کې قربان کړه
که پکار دي وي جنت کې خوب ارام ژوند۔

# سوګند

څو ژوندی يم څو مې ساه وي لا په تن کې
سر به کېږدم غليم ته په کفن کې
بيا هر قبر راته بلې سرې لمبې کړې
که مې نه وو پر هر وينه په بدن کې

# الله اکبر

زما د قام واړه زاړه واړه په ویر پراته دي
په هند و سند و پېښور او په کشمیر پراته دي

زما پر ملک لمبې بلېږي د ککرون سوغات دی
څوک د تیاتک لاندې څوک د دار په لوی زنځیر پراته دي

څوک شهیدان څوک یتیمان شول، څوک ژوندي بندیان
ډیر د څرخي پله په زندان کې لا اسیر پراته دي

د چالاسونه د چابنې، سترګې لاسونه نښته
په خپلو وینو کې شتمېږي ډیر زهیر پراته دي

له شاه شجاع نه یې تاریخ هم په بد نوم یادوي
سره زنځیرونه چې په غاړه د خنزیر پراته دي

دین او وطن یې په روس خرڅ کړل، په ناموس څکوي
د خلق، پرچم ټولي په غین کې د تکفیر پراته دي

نصرت ته الله اکبر وایه ورځه ورپسې
سنګرې کابل کې د لنین بچي شریر پراته دي

۱۱، ببرک کارغل

# غلامي

د هغه ژوندون به څه مزه او خوند شي
چې انسان يې د بل پنجو کې بند شي
توبه کار له تخت و تاج د غلامۍ يم
که مقام مې هم سکندر غوندې بلند شي
چې اختيار يې د ژوندون وي د بل لاس کې
داسې خلک به تاريخ کې څه څرګند شي
بنده کې خو ديوه الله ج پکار ده۔
چې بنده د بند ګانو شي نو ګند شي
هر پيوند له خپل پيوند سره بنا يي
نوم يې ورک شي چې په نورو کې پيوند شي
د پردو په لاربه نه درومي هېڅکله۔
ای نصرته که څوک پوه ستليه دې بند شي

۱۹۸۵ / ۳ / ۲۵

ناصر باغ

# اسلامي تحريک

په سر او ينو به آزاد افغانستان کړم
کمونيزم به نابود په ټول جهان کړم
په ټش لاس دلوی طاقت سره جنګيږم
د تاريخ کنده کې ښخ به سور شيطان کړم
دهريت، کفر والحاد تغر به ټول کړم
په نړۍ کې به حاکم درب قرآن کړم
اسلامي تحريک به خبور کړم ټول جهان کې
نيست نابود به د مارکسيزم پيروان کړم
ما الله خدايه ته سره کړی د اسوګند دی
چې به سر د دې په لاره کې قربان کړم
که غليم رانه ژوندی لاړ له ميدانه -
بيا به نوم له خانه لرې د افغان کړم
زه نصرت د اسلامي ديوې پتنګ ليم
خير که سوځم د اتيارې به چراغان کړم

۱۲ / ۵ / ۱۹۸۵
نوبهار

# سترپیشواته

ستاپه راتګ دغه تیاره نړۍ روښانه شوله
دظلم زور او بربریت دنیاګۍ ورانه شوله
انساني نسل و روان د کړنګونو په لور -
دشرک اوکفر په تیاروکې د اورونو په لور -
د بدبختۍ او هلاکت دطوفانونو په لور
د ژوند بیړۍ خلاصه دوخت له هرخزانه شوله
دظلم زور او بربریت دنیاګۍ ورانه شوله
په مخ دځمکې انسانانو فساد ورته کول -
قتل وقتال و ، ناروا خلکو مرګونه کول -
توپیر، تبعیض وُیو تربله یې جنګونه کول
چې ته پیدا شوې هره سخته مو اسانه شوله
دظلم زور او بربریت دنیاګۍ ورانه شوله
تابشریت ته هلاکت څخه خلاصون راوستو
د نور او سپین ترمخ ، دي مینه پیوستون راوستو
دغیرالله له غلامۍ نه دې بیلتون راوستو
د زمانې بیړۍ په امن له توپانه شوله
دظلم زور او بربریت دنیاګۍ ورانه شوله
تاانسانانو ته د ژوند خوابه رازونه راوړل

د سعادت او د نجات دي پيغامونه راوړل
تا د توحيد او حقيقت بل مشالونه راوړل.
ستا برکت و د انسان خونه ودانه شوله
د ظلم زور او بربريت دنيا ګۍ ورانه شوله

ورکړې بشرته تا د رب د پېژندنې سبق
مينې، خلوص او يوتربل د ځارېدنې سبق
د حق په لار کې د ايثار او سربښندنې سبق
په سمه لار مو قافله د ژوند روانه شوله
د ظلم زور او بربريت دنيا ګۍ ورانه شوله

۱۹۸۴ / ۱۲ / ۱۲

ناصر باغ

# د توحید ځاله

ای د اخوت خاورې تا نه زه قربان شم
ای د ننګ خاورې تا نه زه قربان شم

ته د ننګیالو کور ته د سربازانو کور
تاکې شنه زهری اوسي یې د ماتورانو کور
ته یې د توحید ځاله یې د مؤمنانو کور
ته د خدای پرستو کور ته یې د زمریانو کور

دکې له عظمت خاورې تا نه زه قربان شم
ای د ننګ غیرت خاورې تا نه زه قربان شم

ځانبه ستا په مینه کړې مونږ مال او سرونه کړو
تا به تل خروب ساتو ځار به درنه وینه کړو
مونږ به قرباني ورکړو تا به پرې رنګینه کړو
تا نه سپیلني به شو خوبنه به ستا مینه کړو

ساتو به ستا پت خاورې تا نه زه قربان شم
ای د ننګ غیرت خاورې تا نه زه قربان شم

مونږ کړې ده نیولې ده ستا د ازادۍ لاره
ستا د پت عزت لاره ستا د نیکمرغۍ لاره
پر به نږدو هیڅکله دا د قربانۍ لاره
ستا د ترقۍ لاره ستا د سرلوړۍ لاره

ځکه چې د نصرت خاوند یې تانه زه قربان شم
ای د ننګ غیرت خاوند یې تانه زه قربان شم

## څلوریزه

مسلمان یم نه ویریږمه له اوره
له ټانګونو، طیارو او له هر زوره
سر او مال به د خدای لار کې صدقه کوم
تل به وایمه د حق ناری په زوره

## افغان سوځي

د روسي وحشت په اور کې جهان سوځي
ځمکه سوځي، غرونه سوځي، اسمان سوځي
هر چمن باندې سکروټې راوریږي
مالیار سوځي، بلبل سوځي، ګلان سوځي
سر د رونه شنې لوخړې پورته کیږي
هره خوا د اور لمبې دي، افغان سوځي
د نیپالم په بمونو وطن وران شو

هرات سوځي کونړ سوځي، باميان سوځي
له اسماره ترچترال او بريکوټه -
د شيګل خواکې سر نکين نورستان سوځي
له برکوټ او دره نورآن ترکشمونده
اليشنګ تر اليښکاره کلمان سوځي
د پنجشير سر دري ټولې لولپه شوې
د کمون په اور لوګر او لغمان سوځي
سر وليوانو جوړه کړې کربلا ده
واړه سوځي، زاړه سوځي، ځوانان سوځي
د ماتم ورځې خپرې دي په آسمان کې
د وحشت په سرو لمبو انسانان سوځي
ننګرهار او کندهار کې سرې لمبې دي
بلخ، تخار، فراه کندوز او بغلان سوځي
په کابل د سرو اور رونو باران جوړ دی
شيوه کي، بالاحصار او پغمان سوځي
ګل غونډۍ د اور غونډۍ شوه ورته ګوره
ګل دره، شکر دره تول يوشان سوځي
د هډې تپه د زوړ تاريخ موزيم و
اوس په اور باندې تاريخ د انسان سوځي
استالف باندې اور رونه لګيدلي
هم زابل، کلات، وردګ او ميدان سوځي

نیمروز، ګوړی سره لمبه شوې بمونو
بادغیس سوځي تالقان او پروان سوځي
پکتیکا داور لمبو باندې ستې شوه
درې صوف او هم زیبا سمنګان سوځي
د هلمند ځمکه تبې غونډې سره شوې
دښتې، غرونه یې داور په باران سوځي.
دبنار و نو مورستي شوه په بمونو
په بموام البلاد دجهان سوځي
دغزني پرسینه بلې سرې لمبې دي
نن زانګو دغزنوي همه ارمان سوځي
دپکتیا ځنګلونه اور باندې ایرې شول
خاځي سوځي، منګل سوځي، ځدران سوځي
د نارنج ګلونه خاورو کې پراته دي
هم په سرو لمبو رنګین ارغوان سوځي
ماهیپر کې د سرو وینو فوارې دي
په نغلو او درونټه کې کبان سوځي
د هیواد شتمني ټوله چور او لوټ شوه
نن په اور لعل وګوهر بدخشان سوځي
ای نصرته هرخوا اوردی او ویرونه
سر و لمبو باندې زاړه او ځوانان سوځي

# د شاهين ځاله

د شاهين په ځاله ناست نن تپوسان دي
«که په ځانګو د څند روښاماران دي»
تور کارغه نن په ګلشن حکمراني کا ـ
په سلګو ځکه هرلوري بلبلان دي
اى سپرليه لږ د ميني نظر وکړه ـ
تور وخاوروکې پراته رنګين ګلان دي
سرې لمبې دي شنې لوخړې پورته کيږي
هرې خواته په اورسوي پښتنکان دي
ستورې ځکه تر سحره ويده نه شول
سره اورونه بل پرخونه د افغان دي
سپوږمۍ سترګې کړې د وريځ په ځنګولوري
سيلاب تورنه د سرو وينو راروان دي
د شهيد د برهرونو رنګيني ده
هسې سره چې شفقونه د آسمان دي
د لاله ګلونه نه دي چې ښکاريږي
په اورسوي اندامونه د انسان دي
د نصرت ترقلم ويني ځکه څاڅي
په زړګي يې جوړ داغونه د هجران دي

۳۰/۱۱/۱۹۸۵ ـ کوز تهکال.

# غمونه

نن يمه يواځې دجهان غمونه دي
يو مې دځيل ځان بل دجانان غمونه دي
غم ته پيدا شوی يم په غم کې راګير شوی
ځکه رانه تاو ډير فراوان غمونه دي
سترګې مې وختونو له ګردونو ايرو ډکې کړې
غم له پاسه غم دی په هرآن غمونه دي
خدايه ته مې مل شې تو پانو نوکې ګير شوی يم
يو د رقيب غم بل د هجران غمونه دي
لا نن دمنزل مې له تيرو اغزونه ډکه ده
مخکې مې پرته کاروان کاروان غمونه دي
غم پسې بل غم وي يو غم ځي بل غم راځي
غم دی، غم دی، غم دی بې پايان غمونه دي
څنګه به مې خلاصه شي بيړۍ له کرداو نونه
يو د سمندر بل د طوپان غمونه دي
ختم به نصرته په مرګي دغه غمونه شي
دي پسې د حشر د ميدان غمونه دي

# چمن وسو

په سرو ولمبو مې روح او تن وسو
زما د گل پشان وطن وسو
د سره بنکيلاک د استبداد لمبو کې
بلبل، بوړا وسو، گلشن وسو
د شهيدانو قافلې دي هر لورې
په اور د زور او ځوان بدن وسو
د کمونيزم بې رحمې له لاسه
زما عدن زما ختن وسو
چې ماد زړه په وينو وپاللو
هغه د سرو گلو چمن وسو
په سرو مې کاڼې راوريږي داور
زما د پلار، نيکه مدفن وسو
لا زه ځواني لې غم کې خاورې شوله
چې د نصرت بنکلى مسکن وسو

۱۰/۲/۱۹۸۵

# سپین غرته

په سپینو واورو تکه سپینه غره
هسکه شمله دې چاته ښکته شه
د نګران هیواد په مخ د حسن خاله
د مینې ناوې دې بې پته مه شه

کوره آسمان د رته له خپلې غیرې
ښکلې پوړنې د نقرې در کوي
ستا په سینه رنګین لعلونه شین دي
تا ته سوغات کې شنې جامې درکوي

زمانه ستا پالل په مشکو کوي
په نور و ربل ته ګلونه توممي
ستا سر د روکې جوړ سپرلي وخدام
پر د نګو څوکو دې لالونه توممي.

فلک پر تا د و مره پیرزو کا څکه
ته د مومنو پرګنو خاله یې
ستا لوړ و تړو کې زمري او سیږي
ته د سرتیرو ننګیالو خاله یې

چې تا سرېخونه یې په نوم نازیږي
تا کې له ننګه ډک قامونه اوسي
د آزادۍ لاره کې سر و رکړي

تاکي سر تيري اولسونه او سي

ستا به دي ببنکلي سر درکي به تل
د خپلواکۍ جنډه او چته ساتي
پر دښمنانو به لمبې بلې کړي
تا به له هر غم او آفته ساتي

۱۰/۱۰/۱۹۸۴

# قلمه !

قلمه لبڼه مې د سوي زړه ژړا وليکه
زما اهونه او ويرونه واويلا وليکه
د يتيمانو ترهې او ښکي چي تل خاځي به ځ
د کمونيزم بربريت او ناروا وليکه
کونډې او وزارې اسويلي کوي له ويره غمه
تر خې کيسې زما د ملک د کربلا وليکه
په هره خوا کلو، کوڅوکې دي باران د وينو وليکه
د سرو بو څوينو قتل عام ظلم وتعدي
له هره کوره جنازې د شهيدانو وځي
ولې خاموش يې دا د ظلم انتها وليکه

ساوسي لیوان زموږ وینې په جامونو څښي
چې یې څښي د دې سرې وحشي بلا ولیکه
د سرو وحشت د سرو ېموتو لمبې هیرې نکړې
والي لنصرت د دې ستم په باب بیا بیا ولیکه

# څه غواړمه؟

زه بشریت ته انساني ښکلې شروندون غواړمه
د ظلمتونو او تیارو نه یې خلاصون غواړمه
چې ظلم زور جنګ وجګړه پکې هیڅ ځای نه لري
نیک تفاهم کې احترام هسې سمون غواړمه
سوله ورورې جوړ امنیت ښه همدردي او وفا
ټولې نړۍ باندې حاکم د اسې قانون غواړمه
ټول انسانان دې سره یوشي لکه وروسنو غوندې
له ځانځانۍ او نزاع ځینې بیلتون غواړمه
که په یورپ که امریکا که افریقا کې اوسي
د جهانیانو یو تربله پیوستون غواړمه
د تور او سپین عرب، عجم ترمنځ توپیر چې نه وي
والي لنصرت دورورولۍ داسې تړون غواړمه

# د هرات پاڅون

د هرات ننګیالي جګ شول په میرانه
پر دښمن باندې یې جوړ کړل خزانونه
د شیطان ټولي یې ټول ټوټې ټوټې کړل
پر مرۍ یوځ باندې یې بل کړل مرو اورونه
د لیښن بچي یې وسیزل په اور کې -
هرې خوانه د تکبیر راتلل غږونه
ملحدانو ته معلوم د ایمان زور شو -
پرې وو رتلل چې مؤمنان خالي لاسونه
افغانان د خدای په مینه باندې مست وو
تو یوله یې د حق په لار کې وینه
په مسکو کې په دښمن جوړې لړزې وې
مشول ناکام یې هیګ اوجیټ، توپ او ټانکونه
ای نصرته د ایمان په مقابل کې
نه ټینګیږي د کفارو کړې صفونه

۳۰/۲/۱۳۶۲

# افغان يم

د نړۍ په پاس آسمان ختلی لمر يم
تېښت مې مه بوله د ښمنه اوچت غر يم
تاريخونه مې شاهد د کار نامو دي
زه فاتح د هر ميدان او هر ډګر يم
د ايمان زور مې ښو دلی دی غليم ته
چې هيڅ الره تېښت نه شو هغه سر يم
د مغلو تاړکونه مې مات کړي
هم په زړه باندې لوی داغ د سکندر يم
پرنګيان لا په لمبو کړې تراوسه
د چنګيز مخه مې نيولې سنګر يم
د روسي ښامار ته ختلی يم افغان يم
اصفهانه پورې تللی په ظفر يم
پر ډيلي باندې مې کړې سلطنت دی
سومنات مې دی مات کړي زړور يم
سره پوځونه مې هم وسيزل په اور کې
قربانۍ ته راوتلی د خپل سر يم
ای نصرته سر مې لاس کې دی نيولی
ټينګ ولاړ يمه زغري برهر سنګر يم

۱۳/۵/۱۹۸۴

# مجاهد ته

ای مجاهده دایمان له ولولــونه ډکـه
د شهادت له احساساتو او جذبونه ډکــه
ګوره دښمن دې وار خطا دی د ربه خلاص څه نه شي
کره هر دښته یې له مړو له قبرونه ډکه
نصرت او فتح دې نصیب ده چې بې واره نه شي
کړه د دښمن خوله بیا له خاورو او ایرونه ډکه
ستا انقلاب د نوې ژوند او سباوون زیری دی
دا ستا جهاد تشکیل ولسوته د خلاصون زیری دی
د سرو لښکرو پر صفونو قیامتونه جوړ کړه
په وینه څکو نکو شرمښانو تو پانونه جوړ کړه
د تیښتې لار ده ترینه ورکه ګوره پرې یې نه دې
پر استعمار باندې د هوې خزانونه جوړ کړه
د سمرقند او بخارا د ازادی لپاره
په سره ماڼۍ کې د سرو وینو سیلابونه جوړ کړه
چې تر مسکو پورې پرېنږدې تښتیدلی دښمن
دغه ناکام په کونډو شوی شرمیدلی دښمن
د تور روخاورو غین کی ښخ کړه د روسانو بچي
د کمونیزم او الحاد د پیروانو بچي

د لښتنیزم او ماښکسیزم سلسلې ختمې کړه
په اورلمبو باندې ستې کړه دد هریانو بچې
د کړان هیواد د بنتې، میرې د دوې په وینو سرې کړه
د امو غیین کې کړه لاهو د فرعونیانو بچې
وایي نصرت دازادۍ رنګین بهار راولـه
ای مجاهده تو روشپوته سپین صبا راولـه
۸/۱۱/۱۹۸۴

# غزل څه ولیکم؟

ښایسته مې ډک دی له غمونو غزل څه ولیکم؟
ښوند مې تیریږي په آهونو غزل څه ولیکم؟
لیونی زړه مې لیوني غوندې په خیالونه کوي
د دې شلیدلو ګریوانونو غزل څه ولیکم؟
رقیب په لاس کې ګوري غشې د ستم نیولی
د تورو شپو ترخو وختونو غزل څه ولیکم؟
تبو تیارو مې په جونګړه غوړولې لمن
د سباوون په مشالونو غزل څه ولیکم؟
سترګې مې ډکې له اغزو خوله مې له خاورو ډکه
یارانو زه پر محفلونو غزل څه ولیکم؟
یارانو مانه د جامونو غزل ښله غواړې

ز غمزده د شنو جامو نو غزل څه ولیکم؟
زما په برخه ویر او غم دی خوب خند انشتر دی
نصرته ستا د فرحتو نو غزل څه ولیکم؟

# دعا

په سنګر کې مو کامیاب ربه جهاد کړې
ګران هیواد مو له کفارو نه ازاد کړې
د الحاد لښکرې غرقې په امو کړې
کمونیزم په نړۍ کې نامراد کړې
مونږ چې کړې د باطل په ضد قیام دی -
ته کامیاب مونږه په دې عالي مراد کړې
د اغیارو له منګولو نه مو خلاص کړې
نیست انابود ټولې د کفر او الحاد کړې
ستا د دین بیرغ اوچت کړې په ټول جهان کې
د نړۍ کره کې ختم ښو ر فساد کړې
مستضعف د دغې ځمکې وارثان کړې
مظلومان خلاص له پنجرو نه د صیاد کړې
نصرت وایي افغانان تا ته شرمیږي
ته په خپل فضل نابود د وخت شداد کړې

۸۵/۲/۴ ناصر باغ

# شنې جنډې

دایمان په څواک دا ده یم سر لوړې زما مضمون دی
ګوري نه په تشو لاسو مې مات کړی سور کمون
چې شکست یې نه منلو ما مات کړی هغه زور دی
چې مغرور په توپ او ټانک و ماسیزلي بخیل اوردی
چې په جنګ کې جنګیالي و کیو بای که وېښنا مې ؤ ـــ
نن دهغوی ورور و په صفونو کې ګډ شوی دی
سر به سروغ کوړته یو نسي دو تړې ورک دخپل خلاصون دی
دایمان په څواک دا ده یم سر لوړې زما مضمون دی
هغه فوځ چې په نړۍ کې به لړزه تر بنه انسان ؤ
چې په جنګ کې دیر ما هر ؤ هر دې کړکې قهرمان ؤ
چې چکیان یې ؤ دا ړلي ، هم فاتح پر ترکستان ؤ
ورسره زهري وسلې وې ، هم دجنګ نوی سامان
نن یې ما سره سنګر کې برخه شوی زړه چاودون دی
دایمان په څواک دا ده یم سر لوړې زما مضمون دی
زه هغه غیور افغان یم چه په سر و پښو لوبیږم
له توپو او ټانکونو ، طیارو نه نه ویریږم
دتکبیر نارې وهمه دسنګر په لور روان یم
دتوپان غیږې ته دانګم په توپان نه حصاریږم

ماکفن سر نه ترلې د برې په لور مې تلون دی
د ایمان په څواک د اده یم سر لوړۍ زما مضمون دی

سره فوځونه د سره کار د په میدان کې تار په تار کړل
څه مې حوړند له غوړ و کړل څه په کانو مې سنګسار کړل
لا رتري ورکه ده د تیښتې په رانګ باندې پښیمان دی
دیر بد مخې سره روسان مې لکه خره غونډی مردار کړل
شنې جنډې هر خوار پر بې ای نصرته سباوون دی
د ایمان په څواک د اده یم سر لوړی زما مضمون دی

۱۲ د رمضان المبارک ۱۴۰۴ هق

# سور ماښام

ته چې راغلې له مسکو نه سور ماښام شو
پوه شوم پوه شوم تورې خاورې دې انجام شو
د تره کي او لعين پر لاره روان دي
افغانانو ته معلوم شتا تور مرام شو
په ګوټک او په توپک مؤمنان وژنې
شو
توپ او ټانک دې هم سوغات شوم پیغام
تا د خپل بادار په امر هر څه وکړل
څکه نوم دې شاه شجاع نه هم بدنام شو
په تاریخ کې به په بد نامه یادیږې
ای نصرته چې د نورو خوک غلام شو

# قطعه

نه مؤمن یم له اسلام څخې فدا یم
په دې لاره کې مرګ او دردونو بې پروا یم
که غلیم مې سر ولمبو ته ور کوزار کړي
د احد نارې به جهر باندې وایم

# د سلګو اختره

د کنډې له شنه له ماتمه د سلګو اختره
مه راځه ای د ژړېدو اختره

ای د دردونو، کړاوونو اسویلو اختره
مه راځه ای د ژړېدو اختره

مونږ د روښي وحشت له لاسه په لمبو کې اوسو
په خپلو وینو کې لت پت یو پرهرو کې اوسو
بې کوره ګرځو دربه در خاورو ایرو کې اوسو
زمونږ په برخه سهېلۍ دي د لمبو اختره
مه راځه ای د ژړېدو اختره

هر ځای کې بل دی د یارانو محفلونو کې اور
ویر او سلګۍ دي هره خوا کلو کورونو کې اور
زما د ملک په سردرو او چمنونو کې اور
اورونه بل دي د ماتم د سوځېدو اختره
مه راځه ای د ژړېدو اختره

ته په تیاره ده توره شپه ده هیڅ رڼا نشته دی
خولې مو په وینو باندې سرې هیڅ خندا نشته دی
غم او ماتم دی د خوښۍ هیڅ تمنا نشته دی
څه له راتلې په مونږ د تورو تورو شپو اختره

مه ژاړه ای د ژړېدو اختره

هوښ د ستم په اور سوځېږ و فریاد و نکو .
په ځېلو وینو کې تړنېږ و تل اهو نکو .
ژاوندي په خاورو کې خښېږ و هوښ ویرونکو
د ستمونو او آهونو فریاد و اختره
مه ژاړه ای د ژړېدو اختره

تن په سرو وینو کې د پیغلو او ربلونه سره دي
ځوانان په سرو وینو لمبېږي د ښتي غرونه سره دي
لوی او واړه په وینو سره، کلي کورونه سره دي
د غم ځپلو کړېدلو بې کسو اختره
مه ژاړه ای د ژړېدو اختره

خولې هوښ د ته جوړې نه دي له ایرونه ډکې
سترګې هو کوره چې غلیم کړې له اغزونه ډکې
د ښتې مېرې شوې شهیدانو له قبرونه ډکې
د سوو ساندو، حسرتونو او دردو اختره
مه ژاړه ای د ژړېدو اختره

د لته په وچو سپېرو د ښتو کې خوار ان پراته دي
ورې ي نهر په تن بربنه خوار او پرېشان پراته دي
کورې یې نه چې کونډې ورارې یتیمان پراته دي
د سوروانګر سوروبغرې سروکې دو اختره
مه ژاړه ای د ژړېدو اختره

اختره موږ کره ماتم دی سرو دونه نشته
په وینو سره دي ولسونه فرحتونه نشته
ښکلي جامې او په نکریزو سره لاسونه نشته
سترګې مو ډکې دي د ظلم له اغزو اخټره
مه راځه ای د ژړیدو اختره

اختره موږ نه خوا وسیږو د لمبو په لمن
او سو په د ښتو په میړوکې د اغزو په لمن
اوښکې مو څاڅي له ګریوان د اسویلو په لمن
څه غوارې موږ نه د ماینو لو قصرو اختره
مه راځه ای د ژړیدو اختره

کوندو او وراري په قبرو د شهیدانو ژاري
د کربلا په سویو سویو پټنګانو ژاري
غواړي بابا، میندې په حال د یتیمانو ژاړي
اوښکې ... بهیږي په شلیدلو ګریوانو اختره
مه راځه ای د ژړیدو اختره

د سره ښامار په مقابل کې جهادونه کوو
تاته او نګارونه یو اختره موږ جنګونه کوو
ګوره په سرو وینو لوبیږو غور ځنګونه کوو
یو خپل خلاصون لپاره ناست په سنګرو اختره
مه راځه ای د ژړیدو اختره

لا رشه هغو ته چې د ګلو ګلستان کې اوسي

لا به شه هغه وخت چې ازاد ځمکه آسمان کې اوسي
چې د هوس او خوشحالیو به جهان کې اوسي
مونږ نه پوهیږو به څنګه او خوشحالوا ختره!
مه راځه ای د ژړېدو اختره

اختره مونږ کره بې وینو بل سوغات نشته دی -
او ورد او ویر نه مونږ به برخه خوږ حیات نشته دی
د لته سېرلی ، دلته اختر، دلته برات نشته دی
زړونه متومات ، ژوندون میرات د کړېدو اختره
مه راځه ای د ژړېدو اختره

چې ازادي نه وي اختره خوب څنګه به څه کړو
چې خپلوا کی سره رانه شي وایه تا به څه کړو؟
تا خو لا څه چې دا ژوندون او دا دنیا به څه کړو
په بل وطن کې به دې څه کړو د پردو اختره
مه راځه ای د ژړېدو اختره

چې مو نصیب شي حریت بیا به جشنونه کوو
په ډېره مینه به یو بل ته تبریکونه کوو
کال به کال څه چې هره ورځ به اخترونه کوو
جوړ به سېرلی شي د نصرت به سرد دروا ختره
مه راځه ای د ژړېدو اختره

۸۵/ ۶/ ۱۰ ناصر باغ

# دکوډاکو جرګه

لویه جرګه دلویو غلو جرګه ده
دخوبږوخود روبلو جرګه ده
دا دبا دار په قوماندہ جوړه شوه
دکریملین په اشاروجرګوړه شوه
ورو زړورد قام پاڅون کړی دی
بوه شرمه دغه دپردوجرګه ده
دي یکې تولې خوخاینې خیرې
دغدارۍ او دسیسوجرګه ده
دمړیستوب کړې په غاړه کړې
دخوخاینوکوډاکو جرګه ده
افغانان ټول په بل وطن کې اوسي
حیرته نودا د پرګنو جرګه ده
دپسري مانۍ د درباري لاسپوڅو
دخلق پرچم دتوطئو جرګه ده
د ولسونوغولیدو لپاره
پرحقایقو دپردوجرګه ده
دخوبدنامو رسواشوو خلکو

دجل فریب او چلو تو جرګه ده

نصرت ته دا د غلامی جرګه ده

د لیمن بُت ته د سجدو جرګه ده

# د توحید بیرغ

سر او مال مې د خدای لاره کې قربان دی
له باطلو سره جنګ زما اعلان دی

د توحید بیرغ به پورته به نړۍ کړم
په پوره لاس مې توپک بل کې قرآن دی

# د غم کیسه

«زړه بابه ستا په هر یو تار کې د آدم کیسه ده»
زما په برخه تورې شپې دي د تور ستم کیسه ده

دا ورلمبې مې راخورې دي په دروند وطن
کانې او بوټي به او رسوځي د ستم کیسه ده

چا ته بنکاره کړم د درمن زړه کې بې شمیر دلغونه
له درده ډکه مې د ژوند د هر یو دم کیسه ده

اسمانه لږ خو مهربان شه څه بدلون راوله
کوره قسمت کې مې په غم لیږې دغم کیسه ده

څیرې کړېوان مې تار په تار شو د رقیب له لاسه
خومره غمناکه مې دا اوښکو او د نم کیسه ده

نن د مظلوم افغان په خونه سرې لمبې بلې دي
هره خوا اوردی دا هو نوا و ماتم کیسه ده

د وخت چنګیز توره ایستلې ده هر کور نه کوي
وینې بهېږي په ویالو، د توپ او بم کیسه ده

آه و زګیروي دي د بې وسه او لټ لاسي انسان کیسه ده
وژل، شړل د سره وحشت د هر قدم

د کمونیزم کاغذي او زهرجن ګلونه
خیالي جنت یې کارګرانو ته د چم کیسه ده

کورونه ګور، کالي کفن، ډوډۍ د خاورو معنی
دا د مزدور او زحمتکش د کرم کیسه ده

د نړۍ خلکو راشئ حال مې د وطن وګورئ کیسه ده
جوړ قتل عام دی دا د سره د ډیر کرم

ږدي په دوستۍ کې ولسونو ته د ښکیل دامونه
لاس کې یې توره ده په خوله یې د مرهم کیسه ده

نصرته لږ په ترینه توره هم پرده پورته کړه
وطن پلورنه غلامي د خلق پرچم کیسه ده

# بیرته ځم

زه د څو ورځو میلمه یم بیرته ځم
که خوشحال یم که خفه یم بیرته ځم

هیڅ عزت او قدر نه غواړم له چا نه
پروت په دښتو په میره یم بیرته ځم

زه یو څاڅکی د شبنم یم پلیتی نه یم
تر لمر خرک پورې دیره یم بیرته ځم

لاروی یم یو څو ورځې تیروم
هسې نه چې همیشه یم بیرته ځم

هغه گل یم چې اغزي سره نښته
د سحر خوږه وږمه یم بیرته ځم

نه د چا پر اوږو بار یم نه څه غواړم
د تاریخ یوه صفحه یم بیرته ځم

سور ښامار سره په سر او مال جنگیږم
په سنگر کې به جگړه یم بیرته ځم

گران وطن له غلیمانو پاکومه
بس د تلو په اراده یم بیرته ځم

د پیرۍ یو ملمه نه یم چې به پروت یم
زه نصرت کومه شیبه یم بیرته ځم

# اسلامي انقلاب

دا انقلاب د کمونیزم سلسلې ختموي
د استعمار او بربریت ټولې ریښې ختموي

دې انقلاب کې د نهضت نوی مضمون ویتمه
له ویښو خښونکو، د مظلوم قشر خلاصون ویتمه
د دې د تلو سره بشریته خوږ ژوندون وینمه
سپینه رڼا لوی تحول او اوښتون وینمه

دا به د کفر او الحاد توري تیارې ختموي
د استعمار او بربریت ټولې ریښې ختموي

دا به له ځان سره انسان ته نیکمرغي راولي
دا انقلاب به دې نړۍ ته ترقي راولي
د اسعادت او سوکالي هم خوشحالي راولي
ښکیل ولسونو ته حریت او ازادي راولي

د غلامۍ او اسارت ورځې او شپې ختموي
د استعمار او بربریت ټولې ریښې ختموي

دا انقلاب به ورانه خونه د انسان جوړوي
پر دې نړۍ به حکومت د مسلمان جوړوي
د خدای ج له حکم سره سم به دا جهان جوړوي
پر دې نړۍ کې به حاکم د رب قرآن جوړوي

دا د مارکسیزم لیننزم مفکورې ختموي

د استعمار او بربریت تورلې ریښې خښوي

دا انقلاب تور وتیا روته د سبا زیری دی
د سبا وړن، نوي سحر او د رڼا زیری دی —
په دې رڼا کې به انسان د حق منزل ته رسي
دا د باطل مهلک مرض ته د دوا زیری دی
دا به د خدای د دښمنانو نوبت خاني ختموي
د استعمار او بربریت تورلې ریښې خښوي

## «شاعره»

ای له غیرت او ولولو نه ډکه — د ازادۍ له ترانو نه ډکه
د ظلم زور او د وحشت بد ښمنه — مینې خلوص او له دردونو ډکه
پر آزادۍ او حریت مینه — د حقیقت خوږو نغمو نه ډکه
د ګران هیواد د سرو شاعره
هله بیداره شه له خوبو شاعره

پیاله لمبو نه ډک نظمونه جوړ کړه — په بد عوښتو نکو خزانو نه جوړ کړه
چې د غلیم زړګی لمبه لمبه کړي — د سرو سکرو تو بارانو نه جوړ کړه
چې هر یو خاشکی دې یو بم شي ووقه — له قهره ډک یو خو شعرونه جوړ کړه
د ښمن ستي ... کړه په لمبو شاعره
د ګران هیواد د سرو شاعره

پر د ښمن بیا د اوربارانه اوله — پر سرو ګلو نو یې خزان را اوله
د اوربحري پریږده اور وه — په سر ه مانۍ ورته توپان را اوله
په تند ریز وهیت ناکو شعرو — ور باندې تند رد اسمان را اوله
ای د مور چل او سنګرو شاعره
د ګران هیواد د سرو شاعره

د سنګرو نو ځوانانو پاروه د خدای د لارې غازیانو پاروه

چې په سرو سانو قیامتونه جوړ کړي له سرنه تیر افغانانو پاروه

چې په مسکو کې سرې لمبې بلې کړي ژر خدای پرست مؤمنانو پاروه

راوله زړونه په جذبو شاعره

د ګران هیواد د سرو شاعره

# تاته وایم

ستا خبرې نورې د سنګر خبرې نورې دي

لا هر شه لر سنګر ته د دفتر خبرې نورې دي

مینه د یار ځیو کې قربانې غواړي پتنګ غوندې

لنګ په وینانه شي د دلبر خبرې نورې دي.

ناست یې پلمبور کې او دعوې د شهادت کوې

خدای یې وې چې لا لیه د ډګر خبرې نورې دي

تو له شپه خوبونه د اسلام د خلافت وینې.

وګوره کربوان کې د عمر ﷺ خبرې نورې دي

ځان د رته آئینه کې د زمري غوندې یم برښکاري.

غشو د غلیم ته د تبر خبرې نورې دي

نه ورځې جهاد ته ځان وارث د پیغمبر کڼې

ستا عمل جدا د پیغمبر خبرې نورې دي

دلته که هر څه کړې ځان په دروغو تیر و لی شې

هلته ای نصرته د محشر خبرې نورې دي

# دکونړ سیند ته

د[illegible]ړ مسته سرشاره سینده
بیا دی [illegible] غیرتي توپانونه وینم
له د[illegible] ښهره غرمبېدلی ښکاري
ستا په سینه تل سپین ځګونه وینم

پوهېږم ستا دومره غضب په څه دی
داسې بې واره چې موجونه کوي
د سرو لښکرو تباهي لپاره
په ډېر شدت تل غورځنګونه کوي

له قطبي دښتو نه راغلي خرسان
په خپله غیرتي د مرګ خواته بیایي
مستي چې دي چې موجونه وهي
ته غلیمان بلې دنیا ته بیایې

ستا شور او ځوږ په دښمن اور بلوي
تا ځکې تل ته ډېر تانکونه یوړل
ځکه غلیم درنه په خنګ تیرېږي
تا یې د سره کارد سره پوځونه یوړل

ستا دي بې ساري شهامت ته سلام
ای غیرتي غورځنه روانه سینده

د بنمن دی بولي خونړی سمندر.　　　۱۰/۱۰/۱۹۸۴
د افغانانو قهرمانه سینده

# (اهونه)

په نصیب مې شول اهونه په ژوندون کې
خوږم داور پرمخ تالونه په ژوندون کې
ظالمانو چې د دار پر تخته سپور کړم
غوڅوي مې خپې لاسونه په ژوندون کې
د ژوند حق مې غصب شوی واک مې نشته
پټه خوله کوم فکرونه په ژوندون کې
ای طبیبه لږ مې پټ زخم ته وګوره
خوږم په زړه باندې داغونه په ژوندون کې
د ژوندون تمه مې نشته ای نصرته
کوي مرګ راته ګوابنونه په ژوندون کې

# وسوځېده

وطن مې د وحشت په سر ولمبو وسوځېده
هر لور د کمونیزم په لمبو وسوځېده
تباه مې شول فصلونه هم تباه کلي بنارونه
تاټوبی مې د روس په غرغرو وسوځېده

ګلشن اغزي اغزي شو سره ګلونه پاڼي پاڼي
بلبل دګلوخواکې په سلګو وسوځېده

دميني امتحان دی افغانان په اور سوځيږي
پتنګ غوندې چې شمعې ته په بڼو وسوځېده

داور لمبې خورې دي لوی وار په يکې ورېتيږي
زړګی مې په سکروټو د جاز و وسوځېده

غليم ته يې هرګز د تسليم سر و ربنکته نکړ
هرځوان مې په زندان کې په لينتو وسوځېده

نصرت خير ګريوان د پلينور د بستوکې اوسي
دميني خوږ مسکن يې په توپو وسوځېده

# نصيحت

څوک چې وي د دين وطن دښمن نو يې الله وهي
توره به لالا وهي مړی به عبدالله وهي؟

پام کوی ملګرو دوه رنګي کې هيڅ وفا نشته
هر کار کې صادق اوسی اسلام کې هيڅ ريا نشته
ځی د خدای په لاره کم منزل ته رسيدل غواړه
مه ځی د شيطان پسې هغه لار کې بقا نشته
وي به منافق چې هم هغه وهي هم دا وهي
توري به لالا وهي مړی به عبدالله وهي؟

---

۱ :- د پت او غيرت په معنی

هغو سې د رومې چې د خپل دين خدمتگار وي څوک
مشر کړې هغه چه ستاسې غم نه خبردار وي څوک
ويې کړه بيعت چې تل روان د خدای په لار وي څوک
مه پريږدې ميدان کې چې ظالم، خائن غدار وي څوک
د يردي کمکيان د قام جيبونه تل په غلا وهي
توري به لالا وهي مړي به عبدالله وهي

ودريږه اې وروره په ښتيني مسلمان پسې
څوک چې اقتداء کوي په دين او په قرآن پسې
حق وايه حق ستا په حقيقت نه چې منکر شې
ساسي به منزل ته که سې غالې هم کاروان پسې
ورک د چرګو غل شه چې د دين په نوم دنيا وهي
توري به لالا وهي مړي به عبدالله وهي

ورک به هدايان کړي حقيقت د رنه منتره
ستر ګې به دې پټې کړي دمکر په دفتره
خپل انجام ته وګوره غافله نشې هيڅ کله
ځان نه کړې ملګرې په محشر کې د جال خره
څوک چې شي غافل نو سرتندي به خاخاوهي
توره به لالا وهي مړي به عبدالله وهي

ځنې لري مينه بنه موټر بنګلو قصر و سره
چالاسونه يو کړل به د الرولو پر دو سره

چاجوړ کړي چل دی په دولت او په پیسو (پسی)
څوک گوری په لو یه بڼي له شراب له پیالو سره

ډیر زمونږ په وینو تل شراب کباب حلوا وهي
تور به لا لا وهي مړی به عبدالله وهي

وروره مسلمانه چې بری نږدی د ایمان لاسره
سږي به هدف ته که کړي پینکه د قرآن لاسره

پام چې د دښمن په دسیسو باندې دوکه نه شې
ډیر روده نیولي د ابلیس لعین شیطان لاسره

ډیر ناره په دروغو لا اله الا الله وهي
توره به لا لا وهي مړی به عبدالله وهي

## مرگ مرگ مرگ

مرگ د شوروي په ایجنټانو مرگ مرگ مرگ
مرگ د کمونیزم په حامیانو مرگ مرگ مرگ

ناست چې په چوکه وي او د بل چا غلامي کوي
دوه روبلو لپاره چې د نورو نوکري کوي
واک اختیار د بل وي تش په نوم چې واکداري کوي
مرگ په دې بې دینه واکدارانو مرگ مرگ مرگ
مرگ د کمونیزم په حامیانو مرگ مرگ مرگ

تل کوي کار ونه د ولس او رعیت پر ضد
هرا قدام چې کړي د پرګنو او د ملت پر ضد
وي چې هر یو کار یې د انسان انسانیت پر ضد
مرګ په فاشیستی سر د مدارانو مرګ مرګ مرګ
مرګ د کمونیزم په حامیانو مرګ مرګ مرګ
سیمه او بزی کې چې ظلمونه او وحشت کوي
وژني ولسونه د بشمني او شرارت کوي
غواړي پر اختیا مدام تیری پر بل ملت کوي
مرګ د کریملین په واکدارانو مرګ مرګ مرګ
مرګ د کمونیزم په حامیانو مرګ مرګ مرګ
خدای ته منکر دي د قرآن مخالفان دي دوی
زومد د وحشت غواړي د مارکسیزم پیروان دي دوی
حق سره تضاد دي په باطله لار روان دي دوی
مرګ دوی نصرته په روسانو مرګ مرګ مرګ
مرګ د کمونیزم په حامیانو مرګ مرګ مرګ

۲۰ / ۱۱ / ۱۳۵۷
ـ ننګرهار

# ته څوک یې؟

ستا د سترګو په مات کچکول کې د ژوندون رازونه وینم
ستا د ټکر غوندې ګوګل کې د خوښۍ ډېرې اسرې دي
ستا په وچو سپېرو شونډو کې رمزونه د موسکا دي
ستا د سترګو په ګرداب کې د توږو او ښکو څپې دي
ستا د اتار په تار ګرېوان خو، حقیقت د لېونتوب دی
او د استا لیوني عشق کې، حکمتونه، فلسفې دي
ستا د بې سوده غوښتنو کوکې، منزل ته د تلو راز دی
ستا مایوس ساړه آهونه، د ژوندون یو ښکلی ساز دی
د ساحل په تمه توپانونو کې ګرزېږي
په لټون د خپل کاروان یې د ښتو غرونو کې ګرځېږي
له وحشته ډک تورتم کې، د ډیوو بلېدل غواړي
د ښنک په څېر لېواو، سرواو رونو کې ګرځېږي
ته ژوندون بانده مین یې د ژوند و خوارو ژوندون ته
خپل ژوندون قربانوې تل خزانو کې ګرځېږي
بس پوهېږم چې ستا لاره حقیقت ته رسېدل دي
د انسان دې وړانه خونکې د شمعو بلېدل دي
سربېره لیونیه ستا فکرونه انساني دي
ته د حق د بڼ بلبل یې ستا نغمې جاوداني دي

ته خیرخواه د انسانانو ته حامي د ازادۍ یي
پر دښمن د بشریت دي ګوزارو مرګاني دي
په سرو وینو لوبیدل دي ارمغان دخپلواکۍ دی
د باطل پر ضد قیام دی، دا حکمونه آسماني دي
نه اوس پوه شوم چي ته څوک یې په ښتیا عظیم انساني
ته پټنګ د حقیقت یې حقیقت پسې روان یې

۱۳٦۳/ ۱۱ /۳۰

# غدّاره

د لته څوته لیوني عیاشان
څوبي هدفه ځواني عیاشان -
د انسان د وله حیواني عیاشان
دانني او بروني عیاشان

اوس هم ځیلي چرچي عیشونه کوي
څوم افسوس دی فسادونه کوي

دوی د هجرت ورځې اوښې هیري کړې
دوی دمظلوم ولس نارې هیرې کړې -
د شهادت یې قافلې هیرې کړې -
د یتیمانو یې سورې هیرې کړې -

خدای یې هیر کړې خیانتونه کوي
خارج ته څي سیاحتونه کوي

هلته سلګی ږدي فریادونه جوړ ږدي
د سرو لمبو مخ کې آهونه جوړ ږدي
هرځای د سرو وینو ډنډونه جوړ ږدي -
په سمه وغر قیامتونه جوړ ږدي

خو دوی تسپې په لاس مکرونه کوي
ټګي، دوکې او فریبونه کوي

ای دردیدلو کړیدلو ورورونو
په سرو لمبو کې سوځیدلو ورونو
ای مهاجرو ربړیدلو ورورونو
د حق سنګر کې جنګیدلو ورونو

ستاسې د مرګ پټ تړونونه کوي
دې انقلاب ته نن ګواښونه کوي

داو دالرو غلامان مه منی
د غه بد مسته شرابیان مه منی
په شرق او غرب پسې روان مه منی
د بنګالې زاره ټګان مه منی

دوی تل پر دوته خدمتونه کوي
بلې قبلې په لور لمونځونه کوي

۱۵/۱۱/۱۹۸۴

# اورپوری شو

ښاپه ښیرو اوپه رګونو باندې اورپورې شو
دپسرلي په سروګلونو باندې اورپورې شو
دبلبلانو مینو زړو نه په اغزو خیري شول
چې په ګلشن اوچمنونو باندې اورپورې شو
هاپه ښارکي دیرې هیلي ددیدن درلودې
دهجرشپه شوه دیدنو نو باندې اورپورې شو
غلیمه خوبه په ډېل ظلم او وحشت مغروري
ستاله ستمه ډیرو زړونو باندې اورپورې شو
ماویل ځان ته به دمینې دنیاګۍ جوړوم
یودم محشرشو محفلونو باندې اورپورې شو
تورې تیارې دي راروانې یوتر بله پسې
دسباوون په مشالونو باندې اورپورې شو
کاڼي دبم مې راوریږي په محفل دمینې
ښاپه ګلواوکورونو باندې اورپورې شو
دزړه اسرې مې هیڅ اوجیټ دخاورو لاندې کړلې
ښاراوبازارهم په فصلونو باندې اورپورې شو
ماته خپل کورقصا بخانه شوفریادونه کوم
ډیرومعصومو بدنونو باندې اورپورې شو

د ژوندون ناوې مې د سرو وینو جامې اغوستي
حسن، زینت او سینګار روڼو باندې اوربوري شو

د شهیدانو په سرو وینو لاسونه سره دي
ګوري د پېغلو او ربلونو باندې اوربوري شو

ځوانانو ډېرې هیلې یوړلې د خاورو تل ته
هسکو شملو د پګړیو ولونو باندې اوربوري شو

په پاکه خاوره مې روسانو یرغلونه وکړل
سمه خوځه چې په داګونو باندې اوربوري شو

د استعمار ملې مې بلې دي په کلو، کوڅو
هم مې د ملک په دښتو غرونو باندې اوربوري شو

واړه زاړه مې د نیپالم په بمونو وسول
کورونه وران شول په باغونو باندې اوربوري شو

چا ته ښکاره کړم په باسوتو سوځیدلي تنې؟
یکې په پاکو امیدونو باندې اوربوري شو

ځمکه تبه غوندې سره شوې بري او روڼه بل دي
هم په فضا او اسمانونو باندې اوربوري شو

تپه، تیاره ده، د غم شپه ده، اسویلي ورځ کې دوبه
په وینو سره شول شفقونو باندې اوربوري شو

د هاې فارم کې ناریخ د زهرو خوند اخیستی
هم په شیدو، مالتو، کلونو باندې اوربوري شو

څوک به په مینه د نریتونو دانې څکه کاندي
غازي آباد کې په فارمونو باندې اوربوري شو
په «سخي جان» کې د میلو په ځای مرګونه کیږي
د ګل غونډۍ ارغوانونو باندې اوربوري شو
د «مهترلام» میله بابا له ده په خون او کښتار
د نورستان په ابشارونو باندې اوربوري شو
مسلمان څه چې نن هندوان هم په ماتم اخته دي
د «سلطانپور» په ویساکو نو باندې اوربوري شو
د «ماهیپر» نرشره کوره یکې وینې څاڅي
هم د «سالنګ» په تونلونو باندې اوربوري شو
له «بریکوټ» نه تر «اسمار» سره اوربونه بل دي
په «پېچ» دره او کونړونو باندې اوربوري شو
ښکلي «یکرام» نه د مرګونو قصابان راغلي
د «استالف» په کنډونو باندې اوربوري شو
په «دهمزنګ» کې د پرځوانان پراته په خاورو کې دي
د «پلچرخي» کې د پروونو باندې اوربوري شو
څوک به پکتیاکې د میزرو قالینچې جوړې کړي
د پکتیکا ګنو ځنګلونو باندې اوربوري شو
«غور» که «بغلان» دی که «لغمان» دی په لمبو سوځیږي
هم د «میدان» په میدانونو باندې اوربوري شو
چې نن یوال به د «بامیانو» ننداري ته راتلل -

نن د تاریخ په موزیمونو باندې اوریږي شو
« هلمند » ستي « هرات، ستي فاریاب » تخار » ستي شو
د « سمنګان » په ګودامونو باندې اوریږي شو
« پنجشیر » ته ګوري سردروکې یې او رونه بل دي
هم د « پروان » د بنتو د اګونو باندې اوریږي شو
« فراه » په سرو لمبو سوځیږي کندهار » سوځیږي
د « بدخشان » بنکلو لالونو باندې اوریږي شو
د « غزنوي » « غزني » خزان شو سرې سیلۍ دي پکې
د « افغاني » صفدرکتونو باندې اوریږي شو
پاکه « خرقه » ده کندهار کې نن په خاورو پرته
په مقدسو مکانونو باندې اوریږي شو
هغه لوګرچې په ګلونو به سمسورو مدام
نن یې لاله او غاټولونو باندې اوریږي شو
د « کوردرې » سردارتې خزانې خاورې شولې
د « حاجي ګک » لویو کانونو باندې اوریږي شو
په « ګلدره » « شکردره » کې نن ګلونه نشته
« انار دره » کې انارونو باندې اوریږي شو
بنکلي « کندونړ » ته به په کوم سترګو وګورې خوږک؟
چې یې په بنکلو ځلونو باندې اوریږي شو
« ام البلاد » چې د لرغوني تمدن نښه ګوره
نن یې په دراو دیوالونو باندې اوریږي شو

د ,,هندوکش،، د سر شپونکی دغم شپیلی غږوي
دفیروزکوه په کږنکو نو باندې اوریږي شو

د,,کونړ،، غرونه دي سره شوي دشهید په وینو
هم د,,پامیر،، په نکو بامونو باندې اوریږي شو

د,,سلیمان،، په غر روښي زهري بموونه اوري
هم د سپین غر ترو، لخونو باندې اوریږي شو

د,,سیاه کوه،، تیکي سرې شوي دسکروتو پشان
بیا د,,بابا،، په لویو غرونو باندې اوریږي شو

,,مرغاب،، په وینو کې غرقاب دی فریادونه کوي
هم د,,هلمند،، په غورځنګونو باندې اوریږي شو

,,کوکچه،، له قهرنه غرمبیږي د دښمن په یرغل
د,,کجکي،، لویو بندونو باندې اوریږي شو

د,,فراه رود،، او د,,خاشرود،، سترګو نه وینې څاڅي
د ګران هیواد تولو رودونو باندې اوریږي شو

ښن د,,کابل،، د سیند او به ګوري دخپلو نه دي
د,,دروېتې،، ,,نغلو،، بندونو باندې اوریږي شو

د امو غیږه تکه سره شوه په خپو د وینــــو
د کوېږي سیند په موجونو باندې اوریږي شو

کارګر بې کاره ٠ دره په درخاورې په سرکړې اوس
په کارخانو هم په کارونو باندې اوریږي شو

د بزګرانو ځمکې سوځي د راکټ په لمبو
د زحمتکشو زحمتونو باندې اورېږي شو
که اهنګر دی که خټګر دی که د روزګار ومسګر
په هر کاسب هم په کسبونو باندې اورېږي شو
خانان یې ورک کړل غریبان لا په نس ورېږي ګرځي
د مزدورانو په مزدورو باندې اورېږي شو
پرون رژیم د خلکو ورانې کړې وداني ځمکې
نن د رژیم په فرمانونو باندې اورېږي شو
خان او غریب یې برابر کړ خوله خاورو سره -
د مساوات په پیغامونو باندې اورېږي شو
زن، زر، زمین، کمونستانو کړل شریک خپلو کې
د خلق، پرچم په ناموسونو باندې اورېږي شو
د عدالت دعوه یې څه شوه هیڅ خبر ترې نه شوم
نن د انصاف عدالتونو باندې اورېږي شو
د جوماتونو اذانونو یې کیسې کړولې
د عبادت په مسجدونو باندې اورېږي شو
د دوی اعلان خو د جهاد یې سوا دیه سره
په پوهنځیو، مکتبونو باندې اورېږي شو
تل یې په خوله چې د دوا او د شفا وعدې وې
ناپالم یې را ورولو نو باندې اورېږي شو

دکور پیغام ته یې بې کوره په اُمید کړ خیال
انجام یې دا شو چې کورونو باندې اوربورې شو
د ودې یې راوړه خو مسکونه د بارونو د ودې
په وین وتن وملتونو باندې اوربورې شو
په کالو بوره شو چې کفن ته یې حاجت پرېښود
د تن جامو کې بد نونو باندې اوربورې شو
د سفارت بخواني غل کورېږ سر دار شو د قوم
د جمهوریت په بنیا د ونو باندې اوربورې شو
عجیب ماشین دی خور د ضابطو لوی جنرال جوړوي
د عسکرۍ په منصبونو باندې اوربورې شو
قحط الرجال دی وزیران هم شیرېږ پاس دي بکې
په افغاني وزارتونو باندې اوربورې شو
سرې فاجعې ته کودتا او انقلاب وایي دوی
د انقلاب په ارزښتونو باندې اوربورې شو
هشر او کشر معلوم نه دی کلې ودې ده جوړه
په انساني کرامتونو باندې اوربورې شو
میا او ملا، سپین ږیري، هشر مرتجع بولي دوی
عجیبه وخت دی په وختونو باندې اوربورې شو
تور کښي سپین، سپین کښي تور هر څه چپه دي بکې
دي انقلاب! ماهیتونو باندې اوربورې شو

ادیب ، شاعر ، اولیکوالان یې په برچوغلي کړم ـ

څکه د علم په کد رونو باندې اوربوري شو

شپې ته به ورځ ، ورځ ته به شپه وایي د دوي خوښه

نن په ښکاره واقعیتونو باندې اوربوري شو

فصلونه وسول ، څمکه وسوه ، کاني بوټي وسول

په کروندو او په کښتونو باندې اوربوري شو

روس پرستان روسي فرهنګ روسي کلتور راولي

د افغانانو تهذیبونو باندې اوربوري شو

پاخه یې وخوړل اومه یې هم سکوته پورل

زمونږ په ښتوا وثروتونو باندې اوربوري شو

د قره قل او افغاني قالینو پته نشته

د تجارت په بازارونو باندې اوربوري شو

نن خاورولاندې دي د فن او د مسلک خاوندان

د هنرمند وهنرو باندې اوربوري شو

کرهنه شنه ده ، مالداري او زراعت نشته دی

د کران هیواد په صنعتونو باندې اوربوري شو

د کمونیزم لمبې بلې دي هر څه سوځېږي

نن په لښ لاسو ولسونو باندې اوربوري شو

نن د ایشیا په زړه کې کورې کربلا جوړه د ه ـ

په مستضعفو تکمونو باندې اوربوري شو

لویه جرګه ! کې راټول شوي ښوځایز بریخي
زموږ به پاکو تاریخونو باندې اوربوري شو

نصرته ! ته به کوم فساد دکمو نیزم لیکې
ستا په قلم او کتابونو باندې اوربوړي شو

